

د افغانستان اسلامي امارت
د سمع شکایاتو او ملکي تلفاتو د مخنیوي کمېسیون
اداري ریاست

**ګڼه: ۲۷ ج ۴** **نېټه: ۵/۵/ ۱۴۴۱هـ ق مطابق 2019/12/31م**

**د 2019 میلادي کال، د ملکي تلفاتو د مرګ ژوبلې کلنی راپور:**

**له 2001م کال څخه ترنن ورځې پورې زموږ پرګران هیواد افغانستان باندې، د وحشي اوظالمو امریکایانو، ناټو یرغلګرو ځواکونو اوکابل ګوډاګی اداري یرغل روان دی، چې اصلي موخه او هدف یې د ملکي هېوادوالو ځپل، شهیدانول، بې کوره کول او تعذیبول دي. خارجي یرغلګرو په هره برخه کې د ظلم او وحشت لړۍ روانه کړې چې ملکي هیوادوال، میرمنې، ماشومان، علماءکرام، قومي مخور، ځوانان، د قران کریم حافظان، د مکاتبوشاګردان او محصلین په قصدي ډول په شهادت رسوي، ټپیان، اسیران اوبې کوره کوي یې، په ټولیزه توګه بازارونه، کلي، کورونه، شخصي شتمنۍ، عامه تأسیسات، صحي او تعلیمي مراکز، مساجد، مدارس او مکاتب او د هیوادوالو د خوښۍ مراسم او ودونه، جنازې او عامه اجتماعات بمبارد وي اوله منځه یې وړي، چې د ژوندانه پر هر واټن باندې زموږ ملکي هیوادوال له لویوننګونو سره مخ دي، 2019م کال د تېر په شان بیا هم زموږ د ملکي هیواد والو لپاره خونړی او له ظلم او وحشت څخه ډک کال وو.**

**د افغانستان اسلامي امارت د سمع شکایاتو او د ملکي تلفاتو د مخنیوي کمېسیون د خپلو ولایتي نماینده ګانو، همکارانو، آزادو منابعو، قومي مشرانو او عامو وګړو پر مټ، ټولټال د ملکي تلفاتو (۲۲۹۱) د مرګ ژوبلې بوږنوونکې پېښې ثبت کړې دي. چې له دې جملې څخه (۲۰۷۹) پېښې د آمریکایانو او ددوی پورې تړلې د کابل اداري اړوند عسکرو، پولیسو او اربکیانو لخوا رامینځته شوي دي. او متباقي پیښې د داعش، د لویولارو د ترافیکي حوادثو اویاهم د خلکو د خپل مینځي شخړو له کبله واقع شوې دي.**

**د ملکي تلفاتو په مذکوره (۲۲۹۱) پېښو کې مجموعاً (۸۷۰۷) تنو هیواد والو ته مرګ ژوبله اوښتې ده، چې له دې څخه (۵۴۲۳) تنه یې شهیدان او (۳۲۸۴) یې زخمیان دي.**

**په پورتنیو پیښو کې مجموعه (۱۳۰۷) تنه ملکیان، له وحشت څخه ډکو شپنیو چاپو کې د امریکایانو او هغوی پورې مربوطو ځواکونو لخوا بندیان شوي دي.**

**په مجموعه (۵۴۲۳) شهیدانو کې (۵۱۵۲) تنه د امریکایانو او هغوی پورې تړلو داخلي عسکرو، پولیسو او اربکیانو لخوا په مخامخ ډزو، هوایي بریدونو او شپنیو چاپو کې شهیدان شوي چې د مجموعي شهیدانو (۹۴%) سلنه جوړوي. او متباقي شهیدان د داعش، د لویولارو د ترافیکي حوادثو او یاهم د خلکو د خپل مینځي شخړو په نتیجه کې رامینځته شوي چې ټول (۶٪) سلنه کیږي.**

د ملکي هیوادوالود شهیدانو د فېصدی ګراف




**په تېر یوکال کې د ملکي پېښو په ترځ کې زمونږ (۳۲۸۴) تنه هېواد وال ټپیان شوي، چې (۲۸۵۰) تنه د امریکایانو او د مزدورې ادارې د ځواکونو لخوا چې (۸۷٪) سلنه جوړوي او متباقي کسان د داعش، د لویولارو په ترافیکي حوادثو او خپل مینځي شخړو کې ټپیان شوي دي او (۱۳٪) سلنه کیږي.**

د ملکي ټپیانو د في صدي ګراف




**امریکایان او کابل اداره د خپلو وحشتونو په دوام کوښښ کوي چې په خپله ماتې اوشکست باندې پرده واچوي، د تېروکلونو په تویېر2019 کال امریکایانو او هغوی پورې تړلې کابل ادارې د ملکیانو د مرګ ژوبلې ترڅنګ (۱۰۲) زمونږ د هیواد مقدس مساجد په بمونو انفجار یا بمبارد کړې دي او د (۱۴) مساجدو دروازې یې په بمونو الووزولې دي. (۱۸) بابه مکاتب، (۲۰) صحي**

**کلینیکونه او مراکز، (۱۶۵۰) د عامو خلکو کورونه، (۱۱) دیني مدارس، (۶۲۷) د کورونو او د کانونو دروازې منفجر شوې دي. (۲) هوټلونه، (۲۸۱) واړه او غټ عراده جات، (۱۷۱۹) بابه دکانونه، (۱۱۰۲) عرادې موټرسائیکلان یې تخریب اوسوځولي دي. له دې څخه علاوه سلګونه څاروي (حیوانات)، (۲۶۰) تختې لمریز، (سولر) او ملیونونه نقدې افغانۍ له مختلفو کورونو څخه لوټ کړی شوي دي، د دښمن لخوا دېې دفاع اوبې وزله هېوادوالو (۴۲) د غنمو او وربشو درمندونه هم قصداً سوځول شوي دي.**

**د افغانستان اسلامي امارت د سمع شکایاتو او ملکي تلفاتو د مخنیوي کمېسیون د اسلامي امارت په استازیتوب د یرغلګروټول دغه بشرضدجنایات په کلکو ټکو غندي او په ډاګه کوي چې ذکرشوي ټول بشرضد جنایات د امریکایانو او د هغوی د ملګرو لخواترسره شوي دي، یاد کمېسیون پر نړیوالو بې پرې ادارو او بشري نهادونو باندي ږغ کوي، چې د دغه جنایاتو چې په بې دفاع ملکي هیوادوالو باندې ترسره کیږي کلکه پوښتنه، څېړنه اوغندنه وکړي.**

**موږ باور لرو چې امریکایان او ملګري به یې د وحشتونو په تر سره کولو او زیاتولو سره هیڅکله هم ونه توانیږي، چې خپل شوم اهداف تر لاسه کړي، بلکې په داسي اعمالو سره له خپلې اصلي څیرې څخه پرده پورته کوي.**

**والسلام**

**د افغانستان اسلامي امارت**

**د سمع شکایاتو او ملکي تلفاتو د مخنیوي کمېسیون**

**ایمیل آدرس :** Molkietalafat.m@yahoo.com

**داړیکې شمېرې: 0707918384 واټساپ 0794717946**

**د مخابري نمبر: 5357**

**د مخابري نوم: ( درویش)**

# د امریکایانو د وحشت څو بېلګې:

**(۱):- هلمند موسی قلعه بازارته څېرمه په کونجک کلي ګډو یرغلګروځواکونو دواده په مراسمو بمبار دکې دمېرمنو او ماشومانو په ګډون ۵۰ کسان شهیدان اوټپیان کړل،د دغه ستر جنایت په نتیجه کې د واده د مراسمو ۱ ټونس ۲ سراچه موټر، ۶ کورونه په چاپه او بمبار دکې بشپړ ویجاړ شوي، شهیدان ۳۰کسان ټپیان ۲۰.**






**(۲):-  فاریاب:د ګرزیوان ولسوالی اړوند سرچکن سیمه کې د دښمن بې ۵۲ ډوله الوتکو د ملکي خلکو پر دوو  کورونو د شپې پر ۱۲بجو بی رحمه بمبار د وکړ چې له امله يې په دواړو کورونو کې د مېرمنو او ماشومانو په ګډون (۱۵) تنه عام وکړي شهیدان او ژخمیان شول، چې نومونه يې په**

**لاندې ډول دي.شهيدان:۱ زين الله۲محب الله ابن زين الله۳ بی بی رقيه زوجه زين الله۴شمس الله ولد زين الله۵ عاصه بنت زين الله۶ نازيه بنت زين الله۷ سلام ولد صديق الله۸سبحانيه بنت حبيب الله۹ هاجره بنت حبيب الله۱۰فتانه بنت حبيب الله۱۱ حزافه بنت حبيب الله۱۲ زينب بنت محمدنبی شهيدان ۱۲، ټپيان ۱ خالد۲خليل ۳خيرمحمد تخريب سرايونه ۲**



**(۳):-اروزګان ولايت : د چهارچينو ولسوالۍ دسيګزي او زمبوري په سيموکې دښمن چاپه وهلي دچاپې په مهال يې دملکي خلکو ۳ کورونه په بشپړه توګه بمباردکړي او دميرمنو اوماشومانوپه شمول يې ۲۶ تنه کليوال په شهادت رسولي دي ،همداراز د اروزګان ولايت د خاص اروزګان ولسوالۍ د شيخي ، نيکروز، بادينزو او شيخانو په سيموکې تېره ورځ يرغلګرو په ملکي خلکو هوايي بريدونه کړي چې د ۲ تنه ماشومانو اويوې انجلۍ په شمول ۹ تنه کليوال يې شهيدان کړي /20198/30م**





**(۴):-میدان وردک ولایت : دسید اباد ولسوالی اړوند دتنګی دره  دجوي زرین د کلی  دانجنیر عبد الله په موتر داشغالګرولخوا هوايي برید ترسره شو  په نتیجه کې یې دیوی کورنې ۷ کسان په شهادت ورسول، ۱ انجنیر عبدالله ۲ شعیب ۳ شاه رسول ۴ محصل حبیب الرحمن۵ ډاکتر ګل رحیم۶ محب الله ۷ماشوم رحمان الله شهیدان   ۷ویجار شوی موتر ۱ 2019/سپتامبر/9**



**(۵):- غزني:د شلګر ولسوالۍ د کمال خیلو بازار ورسره د خدوخیلو اوکمال خیلو کلیو باندې امریکایانو اوددوي داخلي غلامانو چاپه ووهله دملکي خلکو ۸۰ بابه دوکانونه يې سوزولي، قیمتې توکي يې ورڅخه غلا کړي، د ګڼو کورونو دروازې يې په بمونو الووزولي،شخصی موټرسیکلونه اوموټرې سوځولي اوملکي خلک يې وهلي او ډبولي دي.2019/9/15م**



**۶:بغلان: ملکي تلفات**

**2019/8/30 م د بغلان ولایت پلخمري ولسوالۍ اړوند د زغریو سیمه د سرورالدین په کلي کې دعبدالله کورباندې دګوداګیانو لخوا د هاوان مرمۍ لګېدلې، چې له امله يې یوه مېرمن شهیده، دوې میرمنې او دوه ماشومان ټپیان شوي دي. په دې پیښه کې یو کلینیک هم په مکمله توګه ویجاړ شوی دی،شهیدان:زنانه: 1ټپیان: ماشومان 2 میرمنی:2**



**۷:لغمان:**

**2019/8/24 م د الينګارولسوالۍ دسنګرمياخيلوپه سيمه کې يرغلګروامريکايانو او دهغو ی اجيروغلامانو لخوا د شپې په لسوبجوباندي چاپه اچولي مالي او ځاني زيانونه يې اړولی دي په سيمه کې يې ډير وحشت کړی حتی په ونو کې مرغان هم په هلاکت رسيدلي د ملکي هيوادوالوکورونو ترڅنګ دوکانونه هم لوټ شوي،د شهيدانو نومونه په لاندي ډول دي.**

**1: محمدګل ولدميراګل عمر45کلن اولادونه 6**

**2: زهيم ولدمحمدګل عمر25اولادونه 2**

**3: ملا عثمان عمر45 کلن اولادونه 8**

**د زخميانو نمونه په لاندې ډول دي.**

**1: سيد ياسر ولد سيدجلال آخندزاده عمر25 کلن اولادونه 4**

**2: فيضان الله ولدسيدجلال آخندذاده عمر18 کلن مجرد،شهيدان3 ، ټپيان:2**



**۸: پکتيا:**

**2019/8/12 م وحشي ګډو ځواکونو د ښوونکو او محصلينو په ګډون ۱۱ تنه ولسي وګړي شهيدان کړي، (دوشنبه، دزرمت ولسوالۍ پورې اړوند «کلالګو» سيمه کې امريکايي ځواکونو د خپلو داخلي عسکرو په ملتيا د ولسي وګړو په کورونو چاپه اچولې ۱۱ تنو ولسي وګړو چې**

زیاتره یې د اختر د رخصتۍ تېرولو په نیت خپلو کورونو ته راغلي وو شهیدان کړل، د خلکو د کورنو دروازې یې په بمونو الوزلې او ګڼ شمېر نقلیه وسایطو ته یې اور ورته کړي،شهیدان.

١ -استاد شفیع الله ولد ډاکټر الفت د کلالګو لیسه کې د فزیک څانګې استاد
٢ -قاري انعام الله ولد ډاکټر الفت د مدرسې طالب العلم
٣ -انصارالله وقاص ولد ډاکټر قدرت د پکتیا پوهنتون تعلیم او تربیې دوهم کال محصل
۴ -حیات الله ولد محمد مختار کابل کې د یوې خصوصي لیسې استاد
۵ -راحت الله ولد عبدالله محصل او په غزني ولایت کې دوکاندار
۶ -حکمت الله ولد عبدالله دولت زایو لیسه کې استاد
٧. نصرت الله ولد عبدالله محصل او په غزني کې دوکاندار
٨ -محمد آصف ولد عزیزالله دولت خان عالي لیسه کې مدیر
٩ -فدامحمد ولد محمد یوسف دهقان
١٠ -نصرالله ولد دورک دهقان
١١. فتح الله ولد جمعه ګل دهقان،امریکایانو اومزدورې ادارې په داسې مهال د افغانان شهیدانولو ته ملا تړلې، چې اسلامي امارت د اختر په مناسبت د جګړې په ډګر کې نیول شوي عسکر د لارې له مصرف سره یو ځای کورونو ته لېږلي او د اختر له پیل تر دې دمه یې هیڅ برید نه دی ترسره کړی.



(۹):- پکتیکا: 2019/8/9 م اشغالګرو اودکابل ادارې ټوپکیانودسرحوضې ولسوالۍ اړوند مارزکو کلي باندې چاپه ووهله، ګډو وحشیانو د دغه جنایت پر مهال د خلکو کورونو او د کلي د

**جوماتونو دروازې په بمونو والووزولې، ۲ تنه له اومنې ولسوالۍ راغلي مسافر يې له جومات څخه را ايستلي او په ډېر وحشت يې په شهادت رسولي دي. شهيدان:2**



**(۱۰):-تخار: د ۱۴۴۱ د محرم د مياشتې د ۱۱ت څخه تر ۱۴ پورې د تخار ولايت د ينګي قلعه په مختلفو سيمو او کليو کې د امريکايي وحشي بمباردله کبله تلفات په لاندې ډول دي. شهيدان۱: محمدظريف او ميرمن يې د پای شافيه د کلي اوسېدونکی۲:نعمت الله ولد الحاج اکرم قريه افغانيه ټپيان۱: مستری حبيب الله ولد ملانصرالدين ۲: د مستري حبيب الله لورقريه رحيم آباد: د شهر کهنه جامع جومات او ورسره د مدرسې اطاقونه: تخريب شوی مکتب : د عمر خيلو مکتب. تخريب شوي کورونه**

**۱: محمدظريف ولد شيرجان خان قريه شهرکهنه**

**۲:سوير ولد تاش فولاد قريه پايشافی ها**

**۳: همايون ولد رويدار قريه شهر کهنه**

**۴:اکرم بای قريه افغانيه**

**۵:پهلوان ولد ايرل قريه جيتوشهيدان2ټپيان:2شهيدکړی شوی مسجد:1تخريب شوی مکتب1تخريب کورونه: 5**

**(۱۱):-خوست:۱۴۴۱/۱/۱۵هـ ق مطابق2019/9/15 م د صبري ولسوالی اړوندسوری پاڼ سيمه کې د شپې مهال ګډو ځواکونو چاپه وهلې دښمن دچاپې پرمهال ۲۰ تنه ملکی وګړي يې له ځان سره وړي.بنديان**

**۱ ګل نبی خان ولد محمدنبی**

**۲ مطيع الله ولد بادشاه نور**

**۳ رحمت هادي ولد وړيکی**

**۴ ګل مت خان ولد ګل نبی خان**

۵ عبدالهادی ولد حاجی خان
۶ هدیت الله ولد ربیع گل
۷ وهاب ولد رحمت گل
۸ سامیل ولد شفق
۹ نصرالدین ولد خان بهادر
۱۰ سمیع الله ولد محمد علي
۱۱ رحمت ولد شفق
۱۲ نورشریف ولد خان بهادر
۱۳ نبی رحمن ولد اخلاص گل
۱۴ حبیب ولد رحمت گل
۱۵ احسان الله ولد خون
۱۶ جلال ولد سیدامین شاه
۱۷ قریب الله ولد سمندر
۱۸ نصرالدین ولد مظفرخان
۱۹ صالح رحمن ولد اخلاص گل
۲۰ بادشاه ولد اختیارگل اسیران:20

(۱۲):- د لغمان ولایت د علیشنگ ولسوالۍ اړوند د شمشخیلو په کلي د مزدورې اداري عسکرو لخوا په قصدي ډول د ملکي خلکوکورونه په نښه شول د بیس څخه د غرني هاوان فائرونه په عام میشته کورونو باندې وشول چې له امله یې یو کورتخریب دمیرمنواو ماشومانو په ګډون دیارلس (۱۳) تنو ته مرګ ژوبله واوښته ۷تنه شهیدان او۶ تنه ټپیان شول

شهېدان
۱. محمدایوب دمحمدآمین ځوي. ۱۹. کلن
۲. محمدآصف دمحمدآمین ځوی ۱۶. کلن
۳. فولاد دمحمدآمین ځوي. ۹. کلن
۴. بلال د محمدآمین ځوي
۵. گل خوبان د خیر محمد ځوي. ۲۵. کلن
۶. عبدالجباردشاه مردان ځوي. ۱۲. کلن
۷. د فیض الله لور. ۸. کلنه ټپیان
۱. عبدالحمید د محمد هاشم ځوي. ۱۰. کلن
۲. سمیع الله دنصرالله ځوي. ۱۱. کلن
۳. نوید د دادیخان ځوي. ۹. کلن
۴. د معنا لور. ۳۵. کلنه. شهیدان: 7 ټپیان:8




(۱۳):- لغمان::۱۴۴۱/۲/۱۲هـ ق مطابق2019/10/11 م د علینګار ولسوالۍ اړوند نازیانو، قلعه ټک، چارقلعه، او خواوشا کلیو کې وحشي ګوډاګیانو او خارجي عسکرو سخت ظلمونه وکړل شپږ تنو ته يې مرګ ژوبله اړولې ده درې تنه ملکي کسان يې په خورا ظلم په شهادت رسولي دي. شهيدان

۱ . باتور د حمدالله زوی

۲ . محراب الدين د معلم برکت الله زوی

۳ . عبدالقهار د حاجي نیازمحمدزوی

دوه تنه نور ملکي کسان يې ټپيان کړي دي

۱ . حمدالله د دين محمدزوی

۲ . احسان الله د حمدالله زوی او یوتن بل هدايت الله د لعل محمد زوی يې له ځان سره د بندي په توګه وړی ده.په پيښه کې ۷ . کورونه لوټ کړي، نقدي پيسي، قیمتي اجناس وغيره اشیاء يې ترينه وړي دي.شهيدان دري تنه ۳ . ټپيان دوه تنه ،۲،اسيريوتن ۱ . ، لوټ شوي کورونه اوه ،۷ .



**(۱۴):- خوست:۱۴۴۱/۴/۲ھ ق مطابق: 2019/11/29 م دعليشيرو ولسوالی مربوطاتو کې دبهرنيو ځواکونو د ډرون الوتکې په برید کې د یو ماشوم په ګډون د یوې کورنۍ شپږ غړي په شهادت ورسېدل.پېښه په داسې حال کې رامينځته شوه چې ديوې کورنۍ غړي په روغتون کې د ماشوم له زیږون وروسته په یو موټر کې بیرته خپل کور ته په لاره وو چې ډرون الوتکې ورباندې برید وکړ چې له امله یې درې میرمنې دوه نارینه او یو نوی زیږیدلی ماشوم په شهادت رسيدلی دی،شهیدان: میرمنی:3 نارینه:2 ماشوم:1 تخریب شوی موټر:1**

**(۱۵):-کندز:**

**۱۴۴۱/۳/۱۱ھ ق مطابق: 2019/11/8 م چهار دره سرک بالا ساحه ته په تاریخ 10/3/1441 د دښمن صفر ۱ قوه چې امریکایان هم ورسره وود عملیاتو په موخه راغلی وو، دوې ورځې يې تيرې کړې، عام مسلمانان يې دخپلو سیمو څخه بې ځایه کړل، د کندز ښار ته مهاجرشول، وحشی قوې د راتلو سره د عامو مسلمانانو 4 عرادې موټر سائیکل سوزولی دی، درې 3موټرسیکلان يې له ځانه سره یوړل. او 5 کورونه يې تخریب کړل. د هغه کسانو نومونه چې کورونه يې تخریب شوي دي.**

**1:محمود ولد عبدالرحمن.**

**2:عبد الحمید ولد عبدالسلام دوکان چورشوی په لسګونو زره افغانۍ تاوان يې ورته اړولی کلی حاجی رحمت.**

**3: حبیب الله ولد اسماعیل کلی یعقوب بای.**

**4: محمدنور ولد الله نور کلی چهار شهیدکورتخریب.**

**وحشي ځواکونه عامو خلکو ته ځاني تلفات هم اړولي دي او عام ملکیان يې شهیدان او ټپیان کړي دي.**

**۱: دحاجی محمدخان لمسۍ شهیده شوې عمر 16کاله.**

**۲: د حاجی محمدخان نږورزخمی.**

**۳: دحاجی محمدخان بله نږورزخمی شوی**

**۴: بي بي زهرا بنت محمد یاسین زخمی شوی عمر 4 کاله.**

**۵: بی بی اسماء درې کلنه بنت فدا محمد زخمی شوې,**

**۶: محمد ادریس ولد عبدالحفیظ زخمی عمر 5 کلن**

**۷: محمدنعیم ولدمحمودزخمی 30کلن**

**۸: محمود ولد ادینه 80کلن زخمی شوی شهیدان: 3 ټپیان : 7تخریب شوي کورونه : 4 د کان تخریب شوی :1**

**۱۶: پکتیا: ۸ /۱۴۴۱/۳ھ ق مطابق: 2019/11/5 م د زرمت ولسوالی د کولالګو بټی بازار باندې یرغلګرو ګډو ځواکونو چاپه واچوله. تقریباً ددرې سوه (300) دکانونونو دروازې او قلفان يې مات کړل. له دوکانونو څخه يې قیمتي اجناس غلا کړل. د مبائل پلورنې درې (3) دوکانونه. درې د خوراکي موادو دوکانونه يې لوټ کړل د یوه دکان ټول مبائلونه يې غلا کړي دي. پنځه (5) موټرسائیکلان يې وسوزول. یو هوټل يې مکمل په ماینونو الوزولی دی. د یوه بارګین د اوه (7) موټرو ښیښې يې ماتې کړي دي. د بازار دکانداران يې وهلي او ډبولي دی. له بازار سره**

**نړېدې کورونو 20 دروازې يې منفجرې کړي دي. يو نفر خان محمد د خيرالدين ځوی يې شهيد کړی دی (۱) د اوبو برمه يې د ډرون په برید تخریب کړې. له کورو يې غلاوې کړي. د صرافي له دوکانه د (۲۰) زرو د موبایل کارتونه وړي او د ځينو دوکانونه يې پيسې اوخوراکې توکي يې وړي.**

**د دکانونو دروازې ماتې کړی شوي:300 سوزول شوي موټرسائيکلان:5 تخریب شوی هوټل:1 د موټرو شيشې ماتې کړی شوې:7 موټران د کورونو دروازې منفجر شوې:20 شهيد:1 غلا شوي د مبائل کارتونه: 020000 افغاني**

**۱۷: لوګر::۱۴۴۱/۴/۱۲هـ ق مطابق:2019/12/9 م د برکي برک ولسوالی په ده شيخ کلي کې د غلامی اردو د ډېسي توپ مرمی لګېدو له امله څلور ماشومان شهيدان شوي دی. د ياد کلي اوسېدونکو د وژل شويو ماشومانو مړي د اعتراض په توګه د لوګر ولايت مقام ته راوړي دي. دغه ماشومان غره ته د خس او خاشاک ټولولو باندې بوخت وو چې شهيدان شول. د شهيدانو نومونه:**

**۱: حامد ولد عمر ګل.**

**۲: امید ولدعمرګل.**

**۳: نيک محمد ولد ګل محمد.**

**۴: ارشاد ولد حاجيګل.**

**شهيدان: ماشومان:4**



**۱۸: کاپیسا: ۱۴۴۱/۴/۲۶هـ ق مطابق 2019/12/23 م دکاپیساولایت د نجراب ولسوالی اړوند دعين دری اوپچغان درې باندې وحشي دښمن د اجيرو غلامانو دالوتکو په مټ په عام مېشته کورونو چاپه واچوله،دعاموخلقو کورونه يې بمبار دکړل لوکاخيلوکلي کې دعبدالقهارکور يې بمباردکړ. اوکور په مکمله توګه باندی تخریب کړی شوی پخپله عبدالقهار زخمی اومشره لورېې هم زخمي ده،د شهيدانو نومونه**

**۱ ـ امید دعبدالقهارځوی.**

**۲ سمیرآغا ولد شاکر.**

۳ ماریه بنت شاکر.
۴: د عبدالستار میرمن.
۵: مریم بنت رمضان .
۶: ملیحه بنت رمضان.
۷: شمیلا بنت رمضان.
۸: : دبهرام خیلوکلی کی دوه کسه
۹: میرآغا دګل آغاځوی شهید
۱۰خان زاده دګل آغاځوی شهید د دواړو ورونو موټر سائیکل هم سوزول شوی دی.دوه کسان زخمیان دي،
۱: جمیل آکا.
۲: جمیل دعبدالقهار ورور زخمي دی. اسیران
۱:نسیم دملک بابه جان ځوی.
۲:آصفخان د ملک بابه جان ځوی.
۳: صبرالله دعبدالرازق ځوی.
۴:ظاهر آکا د فدامحمدځوی.
۵:دستګیر دفقیر محمدځوی
۶:قدرګل د ملکسیداکبرځوی.
۷:رحمتګل.شهیدان: 10ټپیان:3اسیران: 7

